بسم الله الرحمن الرحيم

# اسطوره څه شي ده؟

د اسطورې توپیر د نورو ژبنیو ژانرونو سره دادی چې د «طا» ټکي په کاروني سره یوه عربي توری دی، او داسي توري چې مسـقیلا په عربي، انګلسيـ،او یاهم شرقي، اروپایی یا نورو هندیکو او کتا ګانه ژبو سره تړاو پیدا کوي د هغو ژبو مشترک توري پکي نسته. صرف د «طا» پکښې کارول سوئ ، چې مورږ یې د عربي ژبي یو لغت یا کلیمه بللای سو.

د ا سطورې د ا ستعمال موارد د نورو ژبنیو ادبیاتو په پرتله په فار سی ادبیاتو کي ډیر وینو. «ا سطوره» د سطر په معنی چې د پایې ،ا ساس او بنسټ په نامه سره بللای سـو دا هغه معني نه ده چې د یوه تعمیراتی شـکل په برخه کي استعمالیږي، بلکي د ادبي متونو په لحاظ باندې چې کله یو ستون مورږ په ستونې(کالم) ډول لیکو نو هغه ته اسطوره ویلای سو.

که چیرې د ادبیاتو په برخه کي د اسطورې اهمیت په شعر او نثر کي راسي، نو بیا اسـطوره د افسـانې په شـکل کي توجه کولای سـو په دې معنی چې افســانه یعنی هغه چې حقیقت ونلري، خو په رنګین یا د شـــعر نړۍ کي داسي ترسیم کړي چې تر څو د خلکو(مخاطبین) توجه جلب کړي او داسي و انګیري چې پیښـــي حقیقي صـــورت نیولئ دی ډیر جـالـب الفـاظ او اصــطلاحات د انســان په ذهن کي داسي راګرځېدلي او داسي مضـــمون افریني یې کار کړي وي چې د خلکو ورجلب او پیښـــه حقیقت وګڼې خو په اصــل کي هغه حقیقت ونلري یا د یو چا د ذهني کلماتو د خیال ترســیم او

انځور وي خو کله چي موږ د اسطورې تفکیک د افسانې سره کوو نو افسانه بیا د اسطورې معکوس مفهوم ورکوي.

له افســـانې سره د دې بېل والی بیا دا دی چي  په معکوس ډول هغه حقیقتونه یا فهم او درک چي په ماضــې تیرو وختونو کي په یو داســتان کي یو څا داسي ترسیم کړې وي چي تقریباً حقیقت او کرکټر یې واقعیت ولري، خو د معاصر جهان په اصــطلاحاتو کي د معاصر جهان په مفهوم درک په تشخیص کي چي خلک هغه زړه کیسه یا هغه داستان چي مطالعه کوي او دا پیښــه یې بیا زړه ته لویږي. : د مثال په ډول موږ هغه د پخوانیو ښـامارانو کلمات وایو کیدای شي په هغو شپو کي داسي مار و چي مومن خان مړ کئ وي دا چي په مرور د زمان هغه په افسانه باندې بدل سو ښامار ور څخه جوړ ســـوئ او دی(مومن خان) یې وخوړي او ده یې په نس کي تورې ووهلې نو داهغه افسانه ورڅخه جوړه سوه چي موږ یې حقیقت بللای نسو.

موږ ووایو چي د انســـان په اندازه پلن مار چي د مومن خان لخوا څخه په هغو شــپو کي مړســوی وو کیدای سي چی د انســان ذهن ته رانسي_ چي دومره یو پنډ  یا پلن  مار څوک وویني خو کیدای سي داسي څنګلونه وي چي په هغه کي د انسـان په شـان پلن مار وي بناً په هغو سـاحو کي چي د چا زړه ته داسي پلن مار نه لویږي، خو په حقیقت کي  وي او په یوه موضوع کي یې ترسیم کړی وي نو دې ته د اسطورې مفهوم کاروو.

په درنښت

نوراحمد"قران مل"

۱۱قوس ۱۴۰۳ ل